د پوهنې وزارت

# د زده کوونکو د دوامدارې ارزونې کتاب

## پښتو دریم ټولګی






افغان ماشومان يې لولي

کال: ۱۳۹۸ هـ . ش



# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
دا عزت د هـر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمـــان دی

دا وطن د ټولو کـور دی
د بـلـوڅــو د ازبکـــو

د پښتــون او هــزاره وو
د تـرکـمنــو د تـاجکـــو

ورسره عرب، گوجر دي
پـامیـریان، نـورستانیـــان

براهوي دي، قزلباش دي
هـم ایمـاق، هم پشه یان

دا هېـــواد به تل ځلیږي
لکـه لمر پـر شنه آسمان

په سینـه کې د آسیـا به
لکـه زړه وي جـاویـــدان

نوم د حق مو دی رهبــر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# د زده کوونکو د دوامدارې ارزونې کتاب

## پښتو دریم ټولګی

ښوونځی: ______

ښوونکی: ______

ټولګی: ______

دوره/ ټایم: لومړی / دویم / دریم

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** د زده کوونکو د دوامدارې ارزونې کتاب

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډېټ کوونکي:** د پښتو ژبې او ادبیاتو د اېډېټ څانګې غړي

**ټولګی:** دویم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



دا کتاب د « افغان ماشومان یې لولي » پروژې په تخنیکي مرسته تألیف شوی دی.

# لړلیک

**سرلیک ........................................................................................................ مخ**

# سریزه

د "افغان ماشومان یې لولي" پروژې د لوستلو او لیکلو د زده کړې نمونه په تکویني ارزونه ټینګار کوي. تکویني ارزونه دوه ډولونه لري: (۱. دوامداره ارزونه او ۲. تکویني دوره یی ارزونه). دوامداره ارزونه د ښوونکو له خوا په ورځني ډول د هر درس په جریان کې ترسره کېږي څو د زده کوونکو زده کړه و ارزوي. سربېره پر دې، د اونۍ د پنځمې او شپږمې ورځې درسونه هم په داسې توګه جوړ شوي دي چې ښوونکي زده کوونکي لا زیات وارزوي. په دې میتود تاسې خپل زده کوونکي ارزولی شئ او په لیک لوست کې د هغوی پرمختـــګ کتلی او ثبتولی شئ. د ښوونکو لپاره دا هم مهمه ده چې د دوامدارې ارزونې د معلوماتو ریکارډ ( اسناد) چې دوی یې را ټولوي، وساتي.

د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه له ښوونکو سره د لوستلو، لیکلو، غوږ نیولو، خبرې کولو، د هنرونو او په ځانګړې توګه د ښکلي لیکلو هنر د وړتیا پرمختګ په مهارتونو کې د زده کوونکو د پرمختګ په څارلو او ثبتولو کې د مرستې په موخه ډیزاین شوې ده چې ښوونکي دا فورمه د زده کوونکو د ارزونې په خاطر په منظمه توګه کاروي. هره اوومه اونۍ د تکرار اونۍ ده چې په ترڅ کې یې د تېرو اونیو مهارتونه تکرار او تمرین کېږي. د هرې برخې او اونۍ لپاره د څارنې ځانګړې فورمه شتون لري. مثلاً کله چې تاسې ۱۷مه اونۍ تدریس کوئ، تاسې د ۱۷مې اونۍ لپاره هم د څارنې فورمې په کارولو مکلف یاست. د دغه برخې او اونۍ زده کړه ییزې موخې مشخصې دي او له هغو فعالیتونو سره سمون خوري چې زده کوونکي ورباندې په کار بوخت دي. دا به ستاسې لپاره دا ارزونه اسانه کړي چې هغوی په بېلا بېلو مهارتونو او د زده کړې په هدفونو کې څومره ښه مخ پر وړاندې روان دي.

# د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه

| شمېره | | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د زده کوونکي شهرت | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینی پوهې څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ۹۵٪ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره د لوستلو پر مهال تم کول (تم کول او فکر کول) | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په یوه معلوماتي متن کې د وړکړې شوې کیسې یا موضوع اصلي مفهوم بیانول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۸۰٪ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| لیکل | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې او جملې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۸۰٪ سم والي سره کلمې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د ورکړل شوي چوکاټ او مهمو کلمو په کارولو سره د لارښوونو په درلودلو سره یو لنډ پاراګراف لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | د مفرد او جمع کلمو مفهوم درک کول او عملي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | کلمې ډلبندي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| شفاهي (ټولنيزه عاطفي زده کړه) | په اورېدلو او غږېدلو (خبرې کولو) کې فعاله برخه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | پام متمرکز کول او د پام اړوونکو مزاحمتونو نه ځان ساتل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د اړتیا په وخت کې احساسات کنټرولول او غلي پاتې کېدل | | | | | | | | | | | | | | | |

# د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې د فورمې کارول

د اونۍ په هره پنځمه او شپږمه ورځ، لږ تر لږه ۵ زده کوونکي د ارزونې لپاره انتخاب کړئ. د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه داسې ډیزاین شوې ده چې د زده کوونکو نومونه په پنځه کسیز ګروپ کې لیکل کېږي چې تاسو ته د ارزونې لپاره د زده کوونکو په ګوته کول آسانه کوي. د ورځې په اوږدو کې پنځه زده کوونکي د لوستلو لپاره او پنځه نور زده کوونکي د لیکلو لپاره او همداسې نور انتخاب کړئ. دا غوره ده چې تاسو باید خپل ټول زده کوونکي د هرې ورتیا په برخه کې د کال په اوږدو کې لږ تر لږه درې ځله وارزوئ. خو، دا ډېره مهمه ده چې تاسو له هغو زده کوونکو سره په دوامداره توګه کار وکړئ چې ورتیاوې نه ترلاسه کوي.

د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې په فورمه کې د نومرو ورکولو ۳ درجه یي سیستم کارول کېږي. ۳ درجه یي سیستم او سمبولونه چې په فورمه کې د ښودلو لپاره کارول کېږي، په لاندې ډول دي:

**لومړۍ درجه:/ د زده کوونکو کاري اغېزمنتیا لا هم له وړتیا سره برابره نه ده. سمبول: / (له ٪۷۰ ټیټ)**

**دویمه درجه: ⁄\  د زده کوونکي کاري اغېزمنتیا له وړتیا سره برابره ده. سمبول: ⁄\  (٪۷۰ - ٪۹۰ سم)**

**دریمه درجه:_/ د زده کوونکي کاري اغېزمنتیا له وړتیا څخه هم لوړه ده. سمبول: _/ (٪۹۰ پورته)**

د لومړي ځل لپاره چې یو زده کوونکی ارزول کېږي، هغه شاید په کافي اندازه وړتیا ونه لري او په دې توګه به (/) تر لاسه کړي. د ښوونیز کال په اوږدو کې لږ وروسته، همدغه زده کوونکي ښایي پرمختګ کړی وي او په کافي اندازه یې وړتیا ترلاسه کړې وي. تاسو کولای شئ دوهمه نښه ( \ ) هم لومړۍ نښې ته ورزیاته کړئ؛ ترڅو څرګنده کړي چې زده کوونکی اوس لیاقت (⁄\) لري. که چېرې تاسو دا زده کوونکی یو ځل بیا وارزوئ او وګورئ چې اوس په خورا فوق العاده توګه وړتیا لري، تاسې کولای شئ چې وروستۍ نښه ( _ ) هم ورزیاته کړئ چې مثلث پوره شي.(_/ )

ځینې زده کوونکي به چې تاسو یې په لومړي ځل ارزونه کوئ، ښایي ښه وړتیا وښیي. دا ستونزه نه ده. هغوی ته سملاسي (⁄\) ورکړئ. ځینې غوره زده کوونکي چې یې تاسې په لومړي ځل ارزونه کوئ، کېدای شي آن درې کرښې یا مثلث تر لاسه کړي. هدف دا دی چې ستاسو هیله باید دا وي چې ستاسو د زده کوونکو یوه لویه برخه باید د تعلیمي کال تر پایه د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې په فورمې کې د ټولو ورکړل شویو وړتیاوو لږ تر لږه د دویمې درجې نښان(\ /) خپل کړي. ٪۷۰ او تر دې هم ټیټې نومرې اخیستونکو زده کوونکو سره به بله اونۍ د قابلیت او تمرین په برخه کې مرسته وشي.

د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې په فورمه کې نېغ په نېغه ثبتول ښایي ستونزمن وي. پر ځای یې تاسې کولای شئ د کاغذ پر یوه کوچنۍ ټوټه د ثبت ریکارډ وساتئ یا خپل ټول ثبتول د وقفې/تفریح په اوږدو کې یا د ښوونځي

له وخته وروسته ترسره کړئ. مهمه خبره دا ده چې تاسې هره اونۍ د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه وکاروئ.

تکویني دوره یی ارزونه د ښوونکو له خوا د تکرار په اونیو کې ترسره کېږي. د دې ارزونې پایلې د زده کوونکو د ارزونې په فورمه کې ثبت او د ښوونځیو له مسؤلینو سره شریک کېږي.
کله چې ښوونکي د خپلې ارزونې پر مهال داسې زده کوونکي ومومي چې د لوستونو په ځینو برخو یا قابلیتونو کې ستونزې لری نو باید له دغو زده کوونکو سره د مرستې په خاطر رغنده قدمونه او کړنې ترسره کړي. ځینې اصلاحی کړنې او قدمونه د دې کتاب په سریزه کې ځای پر ځای شوی دي.

## عمومي لارښوونې

د ماشومانو په یوه ټولګي کې، تل ځینې داسې ماشومان وي چې د لوستلو د زده کړې په ځینو اړخونو کې یو څه ستونزې لري. دا زده کوونکي"له ګواښ سره مخ لوستونکي" بلل کېږي. دا په دې معنا ده که چېرې دوی یو څه اضافه مرسته ترلاسه نه کړي، دوی به د لوستلو د زده کړې پر مهارتونو تسلط ترلاسه نه کړي او نه به دوی په ښه توګه لوستل زده کړي. دا ماشومان یو څه اضافي مرستې ته اړتیا لري. د "له ګواښ سره مخ لوستونکو' ځینې ځانګړتیاوې دا دي:

- د غږ پېژندنې په برخه کې د دوی پوهې ښه وده نه ده کړې (د کلمو، سېلابونو او غږونو اورېدل).
- دوی داسې نه برېښي چې د ټولګي له عادي تدریسي لارښوونو څخه دې ګټه واخلي.
- له مرستې پرته دوی په خپل درسي کتاب کې د تمرینونو د ترسره کولو وړتیا نه لري.
- دوی ښایي په کافي اندازه د ښوونځي له کلمو سره ناآشنا وي څو په هغه څه پوه شي چې ښوونکی یې وایي.
- دوی د لوستلو او لیکلو په هکله په فعالیتونو کې لېواله نه برېښي.
- د دوی د پاملرنې موده لنډه وي او په چټکۍ سره له لوستونو څخه پام اړوي.
- دوی زیاتره وخت پوښتنه کوي چې دوی باید څه وکړي؛ خو بیا ژر یې پام بلې خوا ته اوړي.

د ارزونې فورمه به تاسې ته د مشخصو ماشومانو په اړه معلومات درکړي؛ خو تاسې به په ټولګي کې ځینې نور ماشومان هم ووینئ چې شاید یو شمېر ستونزې ولري. د ماشومانو د مرستې لپاره ځینې عمومي لارښوونې دا دي:

۱. **تکراري تدریس** – د هغو زده کوونکو لپاره چې د درس په یوه برخه کې ستونزه لري، د درس هماغه برخه تکرار کړئ. د تدریسي لارښوونو په ورکولو کې ډېر واضح اوسئ. د درسونو کوچنۍ برخې تکرار کړئ او ډاډ ترلاسه کړئ چې زده کوونکي هر څه په ښه ډول تعقیبوي.

۲. **له تدریس مخکې څرګندونې** – هغه زده کوونکي به هم " له تدریس مخکې څرګندونو" څخه ګټه واخلي چې په درسونو کې ستونزې لري. دا په دې معنا دی چې ښوونکي له زده کوونکو سره د بل درس او بل توري لپاره په چمتووالي کې مرسته کوي. دا کار د دغو زده کوونکو لپاره وروسته په ټولګي کې د بشپړو درسونو څارل آسانه کوي.

۳. **په درس کې د یوه زده کوونکي له بل زده کوونکي سره مرسته -** هغه زده کوونکی چې په درس ښه پوهېږي له هغه زده کوونکي سره په ګډه کار کوي چې د درس په یوه برخه کې ستونزه لري. زده کوونکي د درس تمرین په ګډه سره هم کولای شي. د کلمو لوستل یا د متن لوستل تکرارولای شي. د تورو او کلمو تمرین کولای شي.

٤. **ګډ لوستل او لیکل** – کله چې په ګډه سره لوستل او لیکل (د کلمې لوستل او د کلمې لیکل) ترسره شي، دا له زده کوونکو سره په ښه توګه لوستلو کې مرسته کوي. د لوستلو او لیکلو پرمختګ د لوستلواو لیکلو په پرمختګ کې مرسته کوي.

٥. **اضافي تدریس** – د تفریح د وقفې پرمهال یا له عادي درسونو وروسته یو څه اضافي تدریسي لارښوونې ورکړئ.

٦. **تکراري خو لنډ تمرین** – د لوستلو په زده کولو سره، د اضافي تمرین بیا بیا برابرول لازیات اغېزمن کار دی؛ خو یوازې د یو څو دقیقو لپاره. دغه تکراري تمرین هغه وخت نور هم اغېزمن تمامېږي چې کله د اوږدې مودې لپاره تمرین ترسره شي.

۷. **هڅوونکي اوسئ او مثبته تدریسي تګلاره (پیداګوژیک میتود) وکاروئ** – کله چې زده کوونکي په زده کړه کې ستونزې لري او باید درسونه یا د درسونو برخه تکرار کړي، دا مهمه ده چې د یوه ښوونکي په توګه تاسې هغوی وهڅوئ او له زده کوونکو سره مثبت چلند وکړئ. هغوی ته مثبت نظرونه ورکړئ، هغوی ته ووایاست چې نور کارونه به هم ژر سم شي.

## د غږونو او سېلابونو د اورېدلو په برخه کې، له زده کوونکو سره د مرستې لارښوونې

کله چې ماشومان لا هم د غږونو او سېلابونو په اورېدلو کې له ستونزو سره مخ وي، تاسې یو له لاندې کارونو څخه کولای شئ. دا کارونه له آسانه څخه د ډېر ستونزمن په شکل وړاندې کېږي:

- **توپیر لرونکې کلمې** – زده کوونکي باید دریو یا څلورو کلمو ته غوږ ونیسي او د یوې کلمې سر په بل غږ پیل شوی دی.
- **په کلمو باندې د جملې وېشل** – زده کوونکی یوې جملې ته غوږ نیسي او په چکچکو سره کلمې شمېري.

- **په سپلابونو د کلمې وېشل** – زده کوونکی یوې کلمې ته غوږ نیسي او د کلمې په ویلو سره د سپلابونو د شمېر په اندازه د لاسونو حرکتونه ترسره کوي. *بابا* – زده کوونکی دوه ځلې د لاسونو حرکت تر سره کوي *با – با*. – *(تلاوت)* زده کوونکی درې ځلې د لاسونو حرکتونه ترسره کوي *(تـ- ـلا-وت)*.
- **د غږونو ورته والی په گوته کول** – زده کوونکی باید په کلمو کې ورته غږونه په گوته کړي. زده کوونکي دریو یا څلورو کلمو ته غوږ نیسي، دوه کلمې په ورته غږ پیلېږي. د کلمو تر اورېدلو وروسته، زده کوونکی باید ووایي چې کومو دوو کلمو ورته غږ درلود. د بېلگې په ډول: *پیاله، تله، رمه، تواب*. زده کوونکي وايي: *تله، تواب*.
- **یوځای کول** – زده کوونکي یوه وېشل شوې کلمه یوځای کوي. د بېلگې په ډول، ښوونکی وايي: جو|*مات:* زده کوونکي ټوله کلمه وايي: جومات.
- **وېشل** – ښوونکی یوه کلمه زده کوونکو ته وايي. بیا زده کوونکي د لاسونو په حرکتونو سره کلمه په سپلابونو وېشي. د بېلگې په ډول، ښوونکی د *مکتب* کلمه وايي او زده کوونکی وایي مک |تب.
- **پر کلمو تسلط** – ښوونکی یوه کلمه زده کوونکو ته بیانوي او زده کوونکي ته وايي چې یوازې د کلمې یوه برخه دې ووايي. د بېلگې په ډول، ښوونکی زده کوونکي ته وايي: ووایه *ناپاک*. اوس ووایه *ناپاک پرته له /نا/* څخه. زده کوونکی وایي *پاک*.
- **پر غږ تسلط** – زده کوونکی باید د یوه نوي مفهوم لرونکې کلمې یا مفهوم نه لرونکې کلمې د جوړولو لپاره غږ زیات کړي، لرې کړي یا یې بدل کړي. د بېلگې په ډول، زده کوونکی باید یوه کلمه پرته له لومړي، منځني یا وروستي غږ څخه ووایي. ووایه*(انار) پرته له /ا/* څخه، *(نار)* ووایه *(ملخ) پرته له /ل/* څخه، (مخ)، ووایه *(اشرف) پرته له /ف/* څخه (اشر).

## له ماشومانو سره د تورو او کلمو په لوستلو او لیکلو کې د مرستې لپاره لارښوونې

کله چې ماشومانو ته د نویو تورو لوستل او لیکل ستونزمن وي، تاسې لاندې کارونه کولای شئ:

- **د توري (تورو) بیا تدریسول – د** هغو زده کوونکو لپاره د تدریسي لارښونې موده وغځوئ چې ستونزې لري. یوازې ۵ دقیقې هره ورځ. د هماغه ورځې توري بیا تدریس کړئ.
- **توري تکرار کړئ** – د هغو تورو تمرین بیا بیا وکړئ چې مخکې زده شوي دي.
- **نبغ په نبغه نظر ورکول** – له هغو زده کوونکو سره چې د کلمو په لوستلو کې نسبتاً کمزوري دي، نبغ په نبغه نظر شریک کړئ. کله چې یو زده کوونکی یوه کلمه غلطه لولي، روانه یې نه شي لوستلی یا یې هېڅ لوستلی نه شي، ښوونکی سمه کلمه وايي او بیا زده کوونکی یې تکراروي.
- **د توري پېژندل** – د زده کوونکي د تمرین په کتابچه کې یا پر توره تخته دوه، درې یا څلور توري ولیکئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغه توری هم هلته شتون لري چې زده کوونکي ته ستونزمن معلومېږي. زده کوونکي ته ووایاست چې هغه توری په گوته کړي (اشاره ورته وکړي).

- **په کلمو کې تورو ته اشاره کول** – یوه کلمه پر توره تخته ولیکئ او زده کوونکي ته ووایاست چې هغه کلمې ته ګوته ونیسي چې دوی یې تمرین کوي.
- **د فلش کارتونو کارول** – یو ځو فلش کارتونه جوړ کړئ چې توري او/یا سېلابونه لري او فلش کارتونه یو په یو زده کوونکي ته ښایاست. زده کوونکی به د توري غږ وایي. هر توری/سېلاب چې دوی یې صحیح په ګوته کوي، یوې خواته اېښودل کېږي.
- **د توري لیکل او ویل** – زده کوونکي ته ووایاست چې د یوه توري غږ ووایي او هغه په ورته وخت کې په هوا کې ولیکي.
- **د کلمو بیا تدریس** – له هغه زده کوونکو سره چې د کلمو په لوستلو کې ستونزې لري، د کلمو د یوځای کولو او وېشلو تمرین تکرار کړئ. که اړین وي، یو څو نورې کلمې هم په توره تخته ولیکئ او یوځای کول او وېشل یې له زده کوونکو سره تمرین کړئ.
- **د کلمې لیکل او ویل** – زده کوونکو ته ووایاست چې کلمه ووایي او بیا یې ولیکي. هغوی ته ووایاست چې د کلمو د لیکلو پر مهال سېلابونه/توري ووایي.
- **د کلمو د لېست لوستل** – ښوونکی د هماغې اونۍ د کلمو یو لېست جوړوي. کلمې کېدای شي د هماغې اونۍ د کلمو د یوځای کولو او وېشلو له تمرین څخه یا کلمې د هماغه اونۍ له کیسو څخه وي. زده کوونکي د کلمو لېست لولي.

## له ماشومانو سره د جملو او کیسو په لوستلو کې د مرستې لارښوونې

ماشومان ښایي د جملو او کیسو په روانه توګه لوستلو کې ستونزې ولري. دوی باید ټکي په ټکي کلمې له لوستلو څخه د نیمه جملې تر کچې او د جملې تر کچې لوستلو ته پرمختګ وکړي. د جملو او کیسو د لوستلو پر مهال د لحن (غږ ښکته پورته والی) اهمیت لري. هغه زده کوونکي چې د کیسو لوستل ورته ستونزمن معلومېږي، د متنونو له بیا لوستلو او د کلمو د لېست له لوستلو څخه ګټه اخلي. دا له هغوی سره په چټکۍ سره د کلمو په پېژندنه کې مرسته کوي.

- **په ځنډ سره د نظر ورکول** – کله چې یو زده کوونکی په جمله کې یوه کلمه ناسمه لولي، په ځنډ سره د نظر ورکول مرسته کوي. کله چې یو زده کوونکی غلطي کوي، ښوونکی انتظار باسي تر څو وګوري چې آیا هغه یې خپله سموي او که نه؟ که چېرې زده کوونکی یې خپله نه سموي، ښوونکی ورته یوه اشاره ورکوي او زده کوونکی د کلمې په اړه فکر کولو ته هڅوي. د بېلګې په ډول، کله چې زده کوونکی په یوه جمله کې غلطي وکړي، ښوونکی دې وپوښتي: آیا جمله همداسې سمه معلومېږي؟ بیا زده کوونکی کولای شي ویې ګوري او سمه یې کړي. کله چې زده کوونکی په سمه توګه جمله لولي، ښوونکی لنډ نظر ورکوي، لکه: "افرین، شاباش، ډېر ښه، وړاندې ځه."

- **په ګډه/یوځای لوستل** – ښوونکی او زده کوونکي کیسه په یوه وخت کې لولي. ښوونکی د غږ له سم لحن (ښکته پورته والي) سره په لوړ غږ لوستل کوي او زده کوونکي په داسې حال کې چې هغوی یې هم په لوړ غږ لولي، "پر مخ ځي".
- **تکراري لوستل** – ښوونکی لومړی د سم لحن په کارولو سره د کیسې یو پاراګراف په لوړ غږ لوستلو سره تمثیل کوي. بیا ښوونکی او زده کوونکي په ګډه سره پاراګراف لولي. بیا زده کوونکي په ګډه سره پاراګراف په لوړ غږ لولي، ورپسې یوازې یو زده کوونکی پاراګراف په لوړ غږ لولي. بیا ښوونکی دوهم ځلي تمثیل کوي.
- **پر پخوانیو کیسو نظر اچول** – کله کله له پخوانیو لوستونو څخه د کیسو لوستل له زده کوونکو سره ډېره مرسته کوي. دا کار ښایي دوی ته بیا ډاډ ورکړي ځکه چې هغه کیسې آسانه دي. ښوونکی کولای شي له زده کوونکو سره د یوې کیسې په موندلو کې مرسته وکړي چې دوی یې په ښه توګه لوستلی شي او بیا دوی بله کیسه ولولي او بیا بله کیسه تر څو زده کوونکي ښه تمرین وکړي. دا کار څو ورځې او اونۍ ترسره کېدای شي، تر څو زده کوونکي وکولای شي په هغه کچه لوستل وکړي چې تمه یې کېږي.
- **راډیویي لوستل** – زده کوونکي د یوې کیسې یوه ټاکلې برخه (یو څو جملې یا یو پاراګراف) تمرین کوي. بیا دوی خپله ټاکلې برخه د زده کوونکو یو لوی ګروپ ته لولي. نور زده کوونکي یې ورسره یوځای لولي.

## له ماشومانو سره د تورو او کلمو په برخه کې د مرستې کولو لارښوونې

کله چې ماشومان د تورو او کلمو په لیکلو کې له ستونزو سره مخ شي، تاسې لاندیني کارونه کولای شئ:

۱. **د چمتووالي فعالیتونه** – زده کوونکي په سمه توګه د تورو د لیکلو لپاره د غوره خوځښتي مهارتونو منځته راوړلو ته اړتیا لري. دا کار په لاندینیو طریقو ترسره کېدای شي:

(أ) له بدني تمرینونو څخه ګټه اخیستل لکه په هوا کې د تورو لیکل.

(ب) زده کوونکي د توپونو، پوکانو، جالبو ځېرو، سیکو او نور ګردو شیانو په رسمولو سره تمرین کوي.

(ج) له مغزبابو، د بوتل له سرونو، تنیو او کوچنیو تیږو په څېر کوچنیو شیانو سره په لوبو کولو سره د لاس او ګوتو د عضلو تقویه کول. زده کوونکي له دغو شیانو څخه شکلونه جوړولای شي.

(د) زده کوونکي ټکي سره نښلوي. ښوونکی د هغوی د تمرین په کتابچه کې ټکي لرونکي خطونه او شکلونه رسموي او زده کوونکي یې سره نښلوي. په تدریج سره د نقطو ترمنځ د واټن په زیاتولو سره، تمرین نور هم سختېږي.

( هـ) د شکلونو د نقلولو لپاره د تورې تختې فعالیتونه، له ټکي تر ټکي تمرینول یا د دایرو، مربع او داسې نورو په څېر د نامکملو شکلونو بشپړول.

( و) زده کوونکي په شګه کې په خپلو ګوتو سره د شکلونو او تورو تمرین کوي.

(ز) د پیدا کولو تمرینونه

**۲. د غږ پوهنې تمرین کول** – ډاډ ترلاسه کړئ چې زده کوونکي غږ ښه سم اوري. که اړین وي، یو څه د غږ پوهنې تمرینونه وکړئ تر څو له هغوی سره د غږ په ښه توګه اوربدلو کې مرسته وشي.

**۳. کیڼ لاسي زده کوونکي** – کیڼ لاسي زده کوونکي کله کله د قلم په نیولو، مخې ته د کاغذ په ایښودلو او د تورو په لیکلو کې اضافي لارښوونې ته اړتیا لري. د هغوی ظاهري حالت له ښي لاسو زده کوونکیو سره کله کله توپیر لري. دوی اکثره وخت د لیکلو کاغذ، پر ځای د دې چې په میز یې عمودي کېږي، یو څه مایل نیول خوښوي.

#### ۴. د کلمو لیکل

(الف)ښوونکی کلمه لیکي او لولي یې. زده کوونکي یې ګوري او غوږ ورته نیسي.

(ب) زده کوونکي په خپلو ګوتو سره کلمه څاري په داسې حال کې چې کلمه هم لولي. بیا زده کوونکي هغه کلمه په داسې حال کې چې لولي یې هم، نقلوي یې یا یې لیکي. زده کوونکي ورو هغه کلمه ویلای شي؛ خو باید غږونه یې په روښانه توګه ووایي.

( ج) له حافظې څخه دې کلمه ولیکي. که دا سم نه وي نو دویم ګام تکرار کړئ.

(د) د لومړي او دویم ټولګي په پای کې د لیکلو په وروستیو پړاوونو کې، د کلمو څارل ښایي تل اړین ونه اوسي. زده کوونکي کېدای شي کلمه ښوونکي ته په کتلو، په داسې حال کې چې نومورې یې لیکي او وایي او بیا یې ځانته په لیکلو او ویلو، سره زده کړي.

**۵. د سختو کلمو لېست** – زده کوونکي د خپل د تمرین کتاب په وروستۍ برخه کې په تشو پاڼو کې سختې کلمې لیکي. دوی په دوامداره توګه په کور کې د کاغذ پر بېلو بېلو ټوټو د دغه کلمو تمرین کوي. کله چې دوی له حافظې څخه کلمه پنځه ځلې ښه سمه ولیکله، بیا دوی هغه کلمه د تمرین په کتاب کې چلیپا کوي.

**٦. د غږونو/ سېلابونو شمېرل** – ماشومانو ته ووایاست مخکې له دې چې هغوی یوه کلمه ولیکي غږونه یا سېلابونه یې دې وشمېري. د بېلګې په ډول، زده کوونکي باید د "انسان" کلمه ولیکي. دوی وایي: د (انسان) کلمه دوه سېلابه لري |ان|سان|. نو ځکه زه دوه سېلابه لیکم. زده کوونکی دوه سېلابه لیکي.

### له ماشومانو سره د نوښتي لیکلو په برخه کې د مرستې کولو لارښوونې

کله چې زده کوونکي د نوښتي لیکلو په برخه کې له ستونزو سره مخ شي، ښوونکی لاندینې کارونه کولای شي:

۱. **په تمثیلي بڼه وړاندې کول**– ښوونکی د نوښتي لیکلو د تمرین ټول پړاوونه په تمثیلي توګه وړاندې کوي او هر پړاو په روښانه او زړه راښکونکې توګه تشریح کوي.

۲. **د نوښتي لیکلو پیلول** – ځینو زده کوونکو ته ښایي د نوښتي لیکلو کار سخت معلوم شي. ښوونکی له زده کوونکو سره د مرستې لپاره له زده کوونکو نه د پوښتنې کولو له لارې له هغوی سره په نظرونو باندې بحث کولای شي: د دې اونۍ په کیسه کې د هغوی څه خوښ شول؟ آیا دوی کله د کیسې شخص ته ورته کوم کار

کړې دی؟ که زده کوونکو ته دا سخت وي؛ نو د هغوی تجربې ته نژدې پوښتنې ورځنې وکړئ. هغوی په خوړو کې څه خوښوي؟ د هغوی د خوښې لوبه کومه ده؟ بیا هغوی کولای شي په دې اړه یو رسم جوړ کړي او ورسره یو څو توري او کلمې ولیکي یا یې خط خط کړي. که چېرې زده کوونکو ته د موضوع په اړه د رسم جوړول سخت وي، نو ښوونکی کولای شي پیل وکړي او زده کوونکو ته وایي چې څه شی باید ورپسې رسم کړي یا د څه شي په ترسیمولو سره رسم بشپړ کړي. ښوونکی باید د هغه څه لپاره چې زده کوونکی یې سم ترسره کوي، هڅوونکی نظر ورکړي. ( لکه: ډېر ښه، پرمخ ولاړښه...)

۳. **د تدریسي لارښوونو یو په یو تکرارول** – ځینو زده کوونکو ته د نوښتي لیکلو پیلول ښایي ډېر ستونزمن وي، ځکه چې یو شمېر پړاوونه دي چې دوی یې باید ترسره کړي. ښوونکی کولای شي زده کوونکو ته یو په یو تدریسي لارښونې وکړي او زده کوونکي په یوه وخت کې یو پړاو ترسره کولو ته پرېږدي.

٤. **ګډ لیکل** – ښوونکی د لیکلو د پروسې هر پړاو له زده کوونکي سره په ګډه ترسره کوي.

٥. **د جملې لیکل** – که زده کوونکو ته د یوې جملې لیکل (په دوهم ټولګي کې) سخت وي، ښوونکی دلاندینو کارونو په ترسره کولو سره مرسته کولای شي:

(الف) له یوې جملې څخه ګډې وډې کلمې ورکوي او زده کوونکو ته وایي چې له کلمو څخه یوه جمله جوړه کړي.

(ب) زده کوونکی نیمګړې جملې پوره کوي او په تدریج سره د ورکړل شویو کلمو شمېر کم کوي. د بېلګې په ډول:

i. سبا ماسپښین، خالد باید ............ لاړ شي.

ii. سبا ماسپښین، خالد.............................

iii. سبا ماسپښین، ....................................

(ج) زده کوونکو ته یو فعل او اسم ورکړئ او ورته وواياست چې له دې څخه یوه جمله جوړه کړي. د بېلګې په ډول:

iv. نجلۍ، لیکل - نجلۍ په کتابچه کې خط لیکه.

v. هلک، ټوپ وهل- هلک له رسۍ ټوپونه وهل.

٦. **شریک کړئ او پوښتنه وکړئ** – ښوونکی له زده کوونکو سره یوه تجربه شریکوي او په اړه یې له هغوی پوښتنې کوي. د بېلګې په ډول، ښوونکی وايي، "پرون، زما ترور زموږ کور ته زموږ لیدلو ته راغله. زه ډېر خوشحاله شوم."بیا ښوونکی پوښتنې کوي: تاسې ترور لرئ؟ آیا ستاسې خوښېږي چې هغه ستاسو لیدو ته ستاسې کور ته درشي؟ ولې مو خوښېږي/ولې مو نه خوښېږي؟ تر ټولو ښه شخص کوم یو دی چې ستاسو کور ته درځي؟ ولې؟ بیا له زده کوونکو نه د هغه شخص د یو انځور د رسمولو غوښتنه وکړئ او پوښتنه وکړئ چې هغوی ولې د هغه/هغې ورتګ ته خوشحالېږي. هغه کچې ته په کتنې سره چې دوی به وکولای شي خطونه وباسي، یو څو کلمې یا جمله ولیکئ.

## له زده کوونکو سره د غږېدلو او غوږ نیولو په برخه کې د مرستې کولو لارښوونې

د غوره لوستلو او لیکلو مهارتونو د منځته راوړلو لپاره غږېدل او غوږ نیول اهمیت لري. کله چې زده کوونکي په دې برخه کې له ستونزو سره مخ وي، ښايي ستونزه په لاندینیو مواردو کې وي:

**۱. د کلمو زېرمه** – د اظهاراتو او درک لپاره د کلمو لویه زېرمه اهمیت لري.

(أ) زده کوونکو ته د خپلو تجربو د شریکولو فرصت ورکړئ او په دې اړه د پوښتنو په کولو سره له هغوی سره د هغوی په تجربې بحث وکړئ.

**(ب) د کلمو لېست** – زده کوونکي د خپل تمرین کتاب په وروستۍ برخه کې په تشو پاڼو کې د نویو کلمو یو لېست جوړوي. دوی دغه کلمې یوه په یوه، په یوه جمله کې تمرین کوي. یا یو زده کوونکی یوه کلمه وايي او بل زده کوونکی یې په جمله کې کاروي.

**(ج) زده کوونکو ته په لوړ غږ لوستل** – ښوونکی زده کوونکو ته نورې کیسې لولي. ښوونکی ښايي زده کوونکو ته کیسې بیان کړي. په هره کیسه کې دوه کلمې په نښه کړئ او زده کوونکو ته له دغو کلمو سره د تمرین فرصت ورکړئ.

**(د) نوې کلمې** – زده کوونکو ته وواياست چې په ټولګي کې دننه او له ټولګي څخه بهر په نظر اچولو سره نوې کلمې پیدا کړئ.

**(ه) د کلمو معنا** – زده کوونکو ته یوه جمله یا وړه کیسه د لوستلو لپاره ورکړئ او له هغوی څخه په کیسه کې د مشخصو کلمو د معنا پوښتنه وکړئ.

**(و) د ټولګي د کلمو زېرمه** – له زده کوونکو سره د ټولګي د کلمو مشخصه زېرمه تکرار کړئ، لکه توری، کلمه، جمله، د مخ شمېره او داسې نور.

**(ز) د کلمې بدلول** – زده کوونکو ته یو څو کلمې ورکړئ او ورته ووایست چې د دغو کلمو مفرد، جمع یا ماضي پیدا کړئ. د بېلګې په ډول مېز – مېزونه، باغ – باغونه، کتاب – کتابونه. یا ګرځېدل – وګرځېده، کیسه ویل – کیسه وویله، منډه وهل – منډه ووهله او داسې نور. دا کار د ملکي ضمایرو، مخالفو کلمو او داسې نورو لپاره هم تغییر او تبدیل کېدای شي.

**۲. د ژبې مخ په زیاتېدونکي مهارتونه**

(أ) له زده کوونکو څخه دا تمه ولرئ چې هغوی به کله کله نامکملې جملې کاروي؟ دا د غږېدو پر مهال یو عادي کار دی.

**(ب)** پر هغه پیغام تمرکز وساتئ چې زده کوونکی یې وړاندې کول غواړي. کله چې تاسې پوه شئ؛ نو مثبت نظر ورکړئ او بیا ګرامري غلطي اصلاح کړئ.

**(ج)** په بېلا بېلو وضعیتونو کې د زده کوونکو د ژبې د استفادې د ښه کولو لپاره تمثیلي پارچو او په نمایشي توګه وړاندې کولو څخه کار واخلئ او د سترګو اړیکه، د څېرې تأثیرات د بدن د غړو د حرکاتو په څېر د غیرکلامي مهارتونو د اهمیت د درک کولو لپاره د هغوی وړتیا لوړه کړئ.

**(د)** د کیسې د بیانولو د فعالیتونو په هڅولو سره د زده کوونکو کلامي څرګندونو وړتیا ښه کړئ.

**(ه)** زده کوونکو ته ووایاست چې انځور ته وګوري او تشرېح یې کړي.

**(و)** زده کوونکو ته دوه یا درې کلمې ورکړئ او ورته ووایاست چې په جملو کې یې وکاروي.

**(ز)** د څیزونو تشرېح کول – زده کوونکو ته یو شی وښایاست او ورته ووایاست چې تشرېح یې کړي. د بېلګې په ډول، یو پنسل ورته وښایاست. ښوونکی کولای شي ووايي: د دې شي نوم واخلئ، رنګ، دنده، اندازه یې څه ده او له کومو موادو څخه جوړ دی او داسې نور.

### ۳. غوږ نیول

**(أ)** زده کوونکو ته یوه وړه کیسه یا تجربه بیان کړئ او ورته ووایاست چې هغوی دوهم ځلي ووايي.

**(ب)** زده کوونکي د ښوونکي لارښوونې پر ځای کوي (د لوبې بڼه ورکړئ): خپل پنسل راواخلئ، پر شا وګرځئ، د لاسونو حرکتونه وکړئ. دا لارښوونې د زده کوونکو د حافظې په زیاتېدلو سره اوږدې کېدلای شي.

**(ج)** د حافظې پر بنسټ روزنه

i. زده کوونکو ته د ۴ – ٦ کلمو لرونکو جملو د تکرارولو ویل.

ii. زده کوونکو ته ۴ – ٦ کلمو لرونکو جملو د تکرارولو ویل چې مخکې وویل شوې. د بېلګې په ډول له زده کوونکو نه پوښتنه وکړئ چې هغوی کوم څاروي پېژني، لومړی زده کوونکي وايي: غوا. دوهم زده کوونکی د لومړي زده کوونکي لخوا ویل شوی څاروی تکراروي او خپل څاروی هم ورسره زیاتوي، لکه سپی. دریم زده کوونکي مخکینی دوه څاروي تکراروي او خپل څاروی ورسره زیاتوي. نو دریم زده کوونکی وايي: غوا، سپی او پیشو او داسې نور.

**(د)** **یوې مشخصې کلمې ته غوږ نیول** – زده کوونکو ته یوه کیسه ولولئ او ورته ووایاست چې د یوې مشخصې کلمې په اورېدلو دې هغوی د لاسونو حرکتونه تر سره کړي. د بېلګې په ډول، کله چې هغوی د "ورور" د کلمې درلودونکې یوه کیسه اوري، هغوی هر ځل چې د "ورور" کلمه اوري، د لاسونو حرکتونه دې تر سره کړي.

**په نسخ خط سره د ښکلي لیکلو هنر به اړه د زده کوونکو د وړتیا وو د پرمختګ اړوند څو مهم ټکي:**

زده کوونکی په پوره دقت او مهارت سره څو حرفي کلمي او د هغو حرکتونه او همداشان د کلمو او جملو سم لیکل د کرسی خط په مخ د نسخ خط د اصولو او قواعدو د ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره عملاً تمرین کړي.

## د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، لومړۍ برخه – لومړۍ اونۍ

| | | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شفاهي (ټولنیزه عاطفي زده کړه) | د اړتیا په وخت کې احساسات کنټرولول او غلي پاتې کېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | پام متمرکز کول او د پام اړوونکو مزاحمتونو نه ځان ساتل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په اورېدلو او غږېدلو (خبرې کولو) کې فعاله برخه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | کلمې ډلبندي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مفرد او جمع کلمو مفهوم درک کول او عملي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| لیکل | د ورکړل شوي چوکاټ او مهمو کلمو په کارولو سره د لارښوونو په درلودلو سره یو لنډ پاراګراف لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره کلمې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | له ٪۸۰ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په یوه معلوماتي متن کې د ورکړل شوې کیسې یا موضوع اصلي مفهوم بیانول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره د لوستلو پر مهال تم کول (تم کول او فکر کول) | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ٪۹۵ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د زده کوونکي شهرت | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | اونۍ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |

## د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، لومړۍ برخه – دوهمه اونۍ

| ګڼه | د زده کوونکي شهرت | | لوستل | | | | | | لیکل | | | | د کلمو زیرمه | | | شفاهي (ټولنیزه عاطفي زده کړه) | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | نوم | د پلار نوم | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري لوستل | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ۹۵٪ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره د لوستلو پر مهال تم کول (تم کول او فکر کول) | په یوه معلوماتي متن کې د ورکړل شوې کیسې یا موضوع اصلي مفهوم بیانول | له ۸۰٪ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري لیکل | له ۸۰٪ سم والي سره کلمې لیکل | د ورکړل شوي چوکاټ او مهمو کلمو په کارولو سره د لارښوونو په درلودلو سره یو لنډ پاراګراف لیکل | د مفرد او جمع کلمو مفهوم درک کول او عملي کول | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | کلمې ډلبندي کول | په اورېدلو او غږېدلو (خبرې کولو) کې فعاله برخه اخیستل | پام متمرکز کول او د پام اړوونکو مزاحمتونو نه ځان ساتل | د اړتیا په وخت کې احساسات کنټرولول او غلي پاتې کېدل |
| ۱ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۲ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۳ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۴ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۵ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۶ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۷ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۸ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۹ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۰ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۱ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۲ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۳ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۴ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۵ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |

## د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، لومړۍ برخه - درېیمه اونۍ

| برخه | معیار | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شفاهي (ټولنيزه عاطفي زده کړه) | د اړتيا په وخت کې احساسات کنټرولول او غلي پاتې کېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | پام متمرکز کول او د پام اړوونکو مزاحمتونو نه ځان ساتل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په اورېدلو او غږېدلو (خبرې کولو) کې فعاله برخه اخيستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | کلمې ډلبندي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مفرد او جمع کلمو مفهوم درک کول او عملي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| ليکل | د ورکړل شوي چوکاټ او مهمو کلمو په کارولو سره د لاربښوونو په درلودلو سره يو لنډ پاراګراف ليکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۸۰٪ سم والي سره کلمې ليکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري ليکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه ليکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | له ۸۰٪ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په يوه معلوماتي متن کې د ورکړل شوې کيسې يا موضوع اصلي مفهوم بيانول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره د لوستلو پر مهال تم کول (تم کول او فکر کول) | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ۹۵٪ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوينې کولو لپاره چې يوه کيسه يا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرليک، مهمو کلمو او مخکينۍ پوهې څخه ګټه اخيستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د زده کوونکي شهرت | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |

# زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، دویمه برخه – څلورمه اونۍ

| ګڼه | | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د زده کوونکي شهرت | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ۹۵٪ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن یوه برخه بیا لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۸۰٪ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د څوک، څه، کله، چېرته او څرنګه ډول پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| لیکل | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۹۵٪ سم والي سره تکراري توري لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ۸۰٪ سم والي سره کلمې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پیل، منځ او پای درلودونکې یوې کیسې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د یوه کردار د تشریح کولو لپاره یوه جمله لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | د مرکبو اسمونو پوهه ترلاسه کول او کارول یې | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د عادي متضادو کلمو کارول | | | | | | | | | | | | | | | |
| شفاهي (ټولنیزه عاطفي زده کړه) | له حافظې څخه د یو لېست تازه کول او د لنډمهاله حافظې معلوماتو څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د اړونده کارونو ترمنځ له یوه څخه بل کار ته مخ کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په منطقي ډول معلومات تنظیمول او په کټګوریو وېشل | | | | | | | | | | | | | | | |

## د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، دویمه برخه – پنځمه اونۍ

| | | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شفاهي (تولنیزه عاطفي زده کړه) | په منطقي ډول معلومات تنظیمول او په کټګوریو وېشل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د اړونده کارونو ترمنځ له یوه ځخه بل کار ته مخ کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له حافظې ځخه د یو لېست تازه کول او د لنډمهاله حافظې معلوماتو ځخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | د عادي متضادو کلمو کارول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مرکب اسمونو پوهه ترلاسه کول او کارول یې | | | | | | | | | | | | | | | |
| لیکل | د یوه کردار د تشریح کولو لپاره یوه جمله لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پیل، منځ او پای درلودونکې یوې کیسې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره کلمې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | د ځوک، څه، کله، چېرته او څرنګه ډول پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن یوه برخه بیا لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړې لحن او حرکتونو او ٪۹۵ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې ځخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د زده کوونکي شهرت | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | شمېره | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |

## د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، دوېیمه برخه - شپږمه اونۍ

| ګڼه | | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د زده کوونکي شهرت | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینی پوهې څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ٪۹۵ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن یوه برخه بیا لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د څوک، څه، کله، چېرته او څرنګه ډول پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| لیکل | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره کلمې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پیل، منځ او پای درلودونکې یوې کیسې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د یوه کردار د تشریح کولو لپاره یوه جمله لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | د مرکب اسمونو پوهه ترلاسه کول او کارول یې | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د عادي متضادو کلمو کارول | | | | | | | | | | | | | | | |
| شفاهي (تولنیزه عاطفي زده کړه) | له حافظې څخه د یو لېست تازه کول او د لنډمهاله حافظې معلوماتو څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د اړونده کارونو ترمنځ له یوه څخه بل کار ته مخ کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په منطقي ډول معلومات تنظیمول او په کټګوریو وېشل | | | | | | | | | | | | | | | |

# د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، اوومه اونۍ – تکرار

| شمېره | | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شفاهي (ټولنيزه عاطفي زده کړه) | په یوه فعالیت کې کاري حافظه، د پام متمرکز کول او ادراکي نرمښت منه (انعطاف پذيري) عملاً ښودل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | د عادي متضادو کلمو کارول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | کلمې ډلبندي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مفرد او جمع کلمو مفهوم درک کول او عملي کول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مرکب اسمونو پوهه ترلاسه کول او کارول يې | | | | | | | | | | | | | | | |
| ليکل | د یوه کردار د تشریح کولو لپاره یوه جمله لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پيل، منځ او پای درلودونکې یوې کیسې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره کلمې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | **حسن خط:** کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | د څوک، څه، کله، چېرته او څرنګه ډول پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په یوه معلوماتي متن کې د ورکړل شوې کیسې یا موضوع اصلي مفهوم بیانول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره د لوستلو پر مهال تم کول (تم کول او فکر کول) | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن یوه برخه بیا لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ٪۹۵ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینی پوهې څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۹۵ سم والي سره تکراري توري لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د زده کوونکي شهرت | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |

# د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، دریمه برخه – اتمه اونۍ

| ګڼه | د زده کوونکي شهرت | | لوستل | | | | | | | لیکل | | | | د کلمو زېرمه | | | | شفاهي (ټولنیزه عاطفي زده کړه) | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | نوم | د پلار نوم | په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو (وېشلو) لپاره د کلمو د شکل او جوړښت (مورفیمونو) پوهه کارول | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ٪۹۵ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره د یوه متن د لوستلو پر مهال تم کول (تم کول او فکر کول) | له ٪۸۰ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | یوه لوستل شوې کیسه په لنډو ټکو کې بیانول | د ژوندانه له تجربو سره د یوې کیسې پېښو، کردارونو او کړنو ته تړاو ورکول | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | د /ت/ غږ او «ت» توري درلودونکو کلمو سم لیکل | له ٪۸۰ سم والي سره کلمې او جملې لیکل | د پیل، منځ او پای درلودونکې یوې کیسې لیکل | له مؤنث او مذکر اسمونو سره صفتي کلمو ته مطابقت ورکول | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | د متن سیاق او سباق ته په کتلو سره د کلمو معنا اخیستل | د حال زمانه په تېره زمانه بدلول | د ډول ډول احساساتو پېژندل او نومول | تشریح کول چې تاسې په ډول ډول حالتونو کې څه ډول احساس لرئ | د احساساتو د مدیریت استراتیژیانې په ګوته کول او ښودل. |
| ۱ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۲ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۳ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۴ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۵ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ٦ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۷ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۸ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۹ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۰ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۱ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۲ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۳ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۴ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۱۵ | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |

## د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه، دریمه برخه – نهمه اونۍ

| شمېره | | ١ | ٢ | ٣ | ۴ | ۵ | ۶ | ٧ | ٨ | ٩ | ١٠ | ١١ | ١٢ | ١٣ | ١۴ | ١۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د زده کوونکي شهرت | نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پلار نوم | | | | | | | | | | | | | | | |
| لوستل | په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو (وېشلو) لپاره د کلمو د شکل او جوړښت (مورفیمونو) پوهه کارول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په دې اړه د وړاندوینې کولو لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | په ځانګړي لحن او حرکتونو او ٪۹۵ سم والي سره د برخې متنونه لوستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره د یوه متن د لوستلو پر مهال تم کول (تم کول او فکر کول) | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره د لوستلو پوښتنې ځوابول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | یوه لوستل شوې کیسه په لنډو ټکو کې بیانول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د ژوندانه له تجربو سره د یوې کیسې پېښنو، کردارونو او کړنو ته تړاو ورکول | | | | | | | | | | | | | | | |
| لیکل | **حسن خط:** زده کوونکي کلمې په نسخ خط سره په ښکلې بڼه لیکلای شي. | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د /ط/ غږ او «ط» توري درلودونکو کلمو سم لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | له ٪۸۰ سم والي سره کلمې او جملې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د پیل، منځ او پای درلودونکې یوې کیسې لیکل | | | | | | | | | | | | | | | |
| د کلمو زېرمه | له مؤنث او مذکر اسمونو سره صفتي کلمو ته مطابقت ورکول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د مهمو کلمو پر معنا پوهېدل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د متن سیاق او سباق ته په کتلو سره د کلمو معنا اخیستل | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د حال زمانه په تېره زمانه بدلول | | | | | | | | | | | | | | | |
| شفاهي (ټولنیزه عاطفي زده کړه) | د ډول ډول احساساتو پېژندل او نومول | | | | | | | | | | | | | | | |
| | تشریح کول چې تاسې په ډول ډول حالتونو کې څه ډول احساس لرئ | | | | | | | | | | | | | | | |
| | د احساساتو د مدیریت ستراتیژیانې په ګوته کول او ښودل. | | | | | | | | | | | | | | | |

